نبوي مرغلري

**رسول الله (ص) فرمايلي دي:**
ژباړه: څوک چې پوروړي ته وخت ورکړي او يا يې پور وروبخښي، الله جل جلاله به يې د قيامت په ورځ، د عرش تر سيوري لاندې ځاى ورکړي.
«رواه الترمذي»

# طلوع افغان

غوره وينا وي

**ابوبکر صديق (رض):**
پر کوم انسان چې نصيحت تأثير نه کوي، پوه دي سي چې د هغه زړه د ايمان څخه خالي دى.

د امتياز څښتن:
د کندهار اطلاعات او فرهنګ رياست

مؤسس: مولوي صالح محمد "هوتک"

په اوونۍ کې دوه واره چاپېږي

د تأسيس کال: ۱۳۰۰ لمريز، چهارشنبه ۱۹/رمضان المکرم/۱۴۴۶ هـ ق، ۲۹/کب/ ۱۴۰۳ ل کال – ګڼه (۷۷)

Wednesday-19-March-2025 Issue: 77


## د لوړو زده کړو وزير: هر مسلمان بايد هڅه وکړي چې د خپل مسلک اړوند عصري زده کړې تر لاسه کړي




د لوړو زده کړو سرپرست وزير مولوي ندا محمد نديم د شنبې په ورځ په يوه ځانګړې رابلل سوې غونډه کې د کندهار پوهنتون استادانو او محصلانو ته وينا وکړه.

د کندهار پوهنتون د نشراتو او عامه اړيکو آمر باختر خبري آژانس ته ويلي، غونډه د کندهار پوهنتون په مسجد کې دايره سوې وه، چې په کښې د لوړو زده کړو سرپرست وزير مولوي ندا محمد نديم، د کندهار د علماوو شورا مرستيال مولوي اختر محمد زعفراني، د کندهار د ابراهيم النخعي جامعې رياست رئيس عبدالصادق غزنوي، د کندهار د پوهني رياست رئيس مولوي فخرالدين نقشبندي، د کندهار پوهنتون استادانو، اداري کارکوونکو او ګڼ شمېر محصلانو ګډون کړى وو.

د کندهار پوهنتون رئيس مولوي عبدالرحمن طيبي د پوهنتون د علمي او اکاډميک پرمختګ په اړه خبري وکړې چې کندهار پوهنتون ۴مخ

## په کندهار کې د امنيتي او تصفيوي کمېسيون ناسته تر سره سوه

په کندهار ولايت مقام کې د ملي دفاع سرپرست وزير مولوي محمد يعقوب مجاهد په مشرۍ د امنيتي او تصفيوي غونډه تر سره سوه.



د کندهار ولايت مقام د رسنيو دفتر ويلي، په ياده غونډه کې د کورنيو چارو وزارت امنيتي مرستيال ملا محمد ابراهيم صدر، د کندهار والي ملا شېرين اخند، د اميرالمؤمنين حفظه الله د دفتر ۴مخ

## د ميانکوه بند سمسورولو له پاره سوونه نيالګي کښېنول سول

د کندهار ښاروالۍ د ښار په دوولسمه ناحيه کې د ميانکوه بند د ښاروالۍ وياند سيف الله عاصم ويلي، ښاروالي پلان لري چې د ياد



بند سمسورولو له پاره د ياد بند په شاوخوا کې د ۲۵۰ نيالګيو د ايښوولو چاري بشپړي کړي دي. بند په شاوخوا کې د نورو نيالګيو ايښوولو ترڅنګ، د همدې نيالګيو له پاره د اوبو سولري سيستم ۴مخ

## د سپين بولدک له لارې ۱۸ مهاجري کورنۍ هېواد ته راستنې سوې

د کندهار ولايت د تخته پل ولسوالۍ اړوند، په انځرګي کمپ کې، د کډوالو د ثبت او تثبيت کمېټې مسئولينو باختر خبري آژانس ته ويلي، د يکشنبې په ورځ لس




کورنۍ چې د کسانو شمېر يې ۵۴ تنه کېدى، خپل هېواد ته راستانه سوي دي.

د بل خبر له مخې د کندهار ولايت د تخته پل ولسوالۍ اړوند، په انځرګي کمپ کې، د کډوالو د ثبت او تثبيت کمېټې مسئولينو باختر خبري ۴مخ

## په ښار او ولسواليو کې له ۱۳ ښوونځيو سره مرسته وسوه



ولسواليو کې ۱۳ ښوونځيو سره مرسته وسوه.

د کندهار پوهني رياست وياند مولوي زبير احمد ذاکرمل ويلي، د کندهار پوهني رياست او د کوچنيانو د ساتني مؤسسې په همکارۍ، د ښار او ولسواليو په ښوونځيو کې د درسي موادو مرسته وسوه.

د کوچنيانو د ساتني مؤسسې له لوري په ښار او له ياد ښوونځيو ۴مخ

## په کندهار کې د زرونه جريبه مځکې د غصب مخه نيول سوې ده



په کندهار کې د تېرې يوې مياشتې په لړ کې، د څه باندې ۷۵ زره جريبه امارتي مځکې، د غصب مخه نيول سوې ده.

د کرهڼې، اوبو لګولو او مالدارۍ رياست مسئولينو، په کندهار ښار او ۱۹ ولسواليو کې د ۹۲ زره ۱۱۳ جريبه مځکو دوسيې بررسي کړي دي.

د ياد رياست وياند محمد حنيف حقمل د دوشنبې په ورځ باختر خبري آژانس ته ويلي، په بررسي ۴مخ

## په تېر کال کې سوونو جنايي پېښو ته رسېدنه سوې ده

د کندهار امنيې قوماندانۍ د ۱۴۰۳ ل کال په اوږدو کې ۹۱۵ بېلابېلو جرمي پېښو ته لاسرسى کړى دى.

د امنيې قوماندانۍ وياند ملا اسدالله جمشيد



ويلي، د قوماندانۍ اړوند د جنايي جرمونو د مديريت له لوري ۱۲۶۸ تنه شکمن د قتل، موټرونو او موټر سايکلونو او وسلو د غلا، جعل کاريو او يو شمېر نورو اړوند پېښو په تړاو نيولي دي.

په روان کال کې د ۹ عرادې بېلابېلو وسايطو د غلا په تړاو ۱۴ تنه ۴مخ

## د مطالبو سرليکونه



د طلوع افغان خبري (سرليکنه)

## اور بل کېږي باندي؛ د غم لرګي تر لاندي!

اسلامي نړۍ نن ورځ په خپل تاريخ کې تر ټولو کمزوری موقف تجربه کوي، دا واحد ملت نن پارچه –پارچه دى، مسلمانان په يواو بل نامه شهيدانېږي، د مسلمان وينه د بل هر چا په پرتله، ډېره ارزانه سوې ده، ټول کفار که شرق وي، که غرب؛ مسلمان ته يې سلا يوه ده.

د طلوع افغان جريدې د تصحيح مخکني مسئول بسم الله غرني به زيات وخت يوه کيسه کوله، هغه ويل، يو وخت يو ملنګ هندوانې او مستې خوړلې، يو کس چې پر لارې تېرېدى، پر ملنګ يې سترګې سوې، نو ورته ويې ويل :ملنګ آکا! هندوانه او مستې يو ځاى مه خوره، تاوان به درته وکړي.

ملنګ په غوسه ورته وويل: ولاړ سه!

په دا سبا چې بيا هغه سړی پر همدې لاره تېرېږي، ګوري چې ملنګ ناروغ دى. پوښتنه يې ځني وکړه، چې ملنګ آکا خداى دې خير کړي!

ملنګ په زهيره لهجه ورته وويله: مستو او هندوانې لاس سره ورکړی دی، ملنګ له منځه وړي.

اوس هم کفر که شرق وي او که غرب لاس يې سره ورکړی دی، چې مسلمانان به له منځه وړي يا به يې اپل (تابع) کوي. که ملنګ د هندوانې او مستو د يو ځاى خوړلو غلطي نه واى کړې، ملنګ نه ناروغ کېدى. د اسلامي نړۍ ضعف هم دغسي عوامل لري، چې دوی ته له خپله لاسه ور پېښه ده. پر عواملو يې تفصيلي بحث نه کوو، خو دو نه وايو، چې اسلامي نړۍ له دې ضعفه د خلاصون له پاره دوې لارې بايد حتمًا وکاروي، يوه يې اوږدمهاله ده او بله يې سمدستي يا لنډمهاله.

اوږدمهاله حل لاره:

کفري هيوادونه نن ځکه دونه مغرور دي، چې د عصري علومو او ټکنالوژۍ په برکت يې خپل ځانونه له هره اړخه پر ځان بسيا کړي دي، خو زموږ مسلمانان لاهم د کفري توليداتو څخه ګټه اخيستونکي دي، زموږ تر ټولو شتمن مسلمان هيوادونه طياره او توپ خپله نه جوړوي، بلکي د امريکا او نورو غربيانو څخه يې رانيسي.

له کفري هيوادونو سره سيالي يوه اړتيا ده، مسلمان هيوادونه دي د عصري علومو پرمختګ ته پاملرنه خورا زياته کړي.

په نبوي دور کې کله چې په جګړه کې د کفارو جنګيالي بنديان کېدل، نو هغوی به په دې شرط خوشي کېدل، چې مسلمانانو ته يو لړ عصري فنون ور وښيي.

اوس هم د اوسني عصر مسلمانان بايد دا غلطي جبران کړي، چې په ټکنالوژۍ کې يې ځانونه له کفارو سره نه دي سيالان کړي.

لنډمهاله (سمدستي) حل لاره:

تېره ورځ د اسرائيلو له لوري پر فلسطين يووار بيا بريدونه پيل سوي، چې تر ۴۰۰ زيات فلسطينيان يې شهيدان کړي دي. کفار په بېغمه زړه غزه بمباروي، عراق، افغانستان، سوريه، يمن او ليبيا تباه کوي، دا حالت ممکن تر دې خونړی سي، که نن غزه تباه کېږي، سبا دا ورځ پر نورو اسلامي ممالکو هم راتلونکې ده.

د اسلامي هيوادونو له پاره اوس د موضوع سمدستي حل له پاره دا په کار ده، چې بايد د غزې مسلمانانو د دفاع له پاره يوه اتحاديه جوړه کړي، ټول اسلامي هيوادونه دي په يو ږغ او يو لاس د اسرائيلو پر خلاف، دامکان تر حده بنديزونه وضع کړي، سوداګريزي اړيکې دي ور سره پرې کړي او دا اشغالګر دي مجبور کړي، چې د فلسطينيانو د ځپلو څخه لاس پر سر سي.

اداره

## بېلابېل موضوعات

### اسلام ته بشپړ داخل سئ!

بریالی "فیضي"

یو مولوي صاحب چې زموږ له ډېرو نژدې ملګرو دی، یوه ورځ یې روژه ماتي ته دعوت کړم، هغه د خپل مسجد په حجره کې اخته و، د روژمات وخت را نژدې و، ده شلومبې او سلاته تیاروله، زما په ګډون څو نور مېلمانه هم وو، هغوی هم یو – یو را ورسېدل، د روژه مات دسترخوان هوار سو، شیان ور باندي کښېښوول سول، آذان ته لا هم څه وخت پاته و، یو ملګري د روژې په میاشت کې د خوراکي توکو د ګرانېدو بحث یاد کړ، د ځینو تجارانو او دوکاندارانو د بې انصافۍ خبره یې وکړه، مولوي صاحب سمدستي یوه ډېره جالبه خبره وکړه. هغه ویل: د ډېرو افغانانو اخلاق د لمونځو څخه غلط برداشت خراب کړي دي.

ناستو ملګرو یو او بل ته سره وکتل، حیران سول، چې مولوي صاحب او داسي خبره؟!!!

مولوي صاحب خپله خبره تشریح کړه، چې ډېره پرځای وه. هغه ویل: زموږ خلک فکر کوي چې اسلام او مسلماني یوازي په لمانځه کې ده، ځکه نو هر څوک چې مسجد ته پنځه وخته را وځي، تر هغه ښه مسلمان نسته؛ نور نو د عدل، انصاف، ګاونډیتوب، اخلاص، تقوی، پرهېزګارۍ او داسي نورو ښو اخلاقو په اړه مکمل بې پروا او هیڅ یې د ځان مکلفیت نه ګڼي.

په حقیقت کي یو مسلمان د اسلام د ټولو قوانینو په تطبیق او پرځای کولو مامور دی، لکه چې الله جل جلاله فرمایي:

یَا أَیُّهَا الَّذِینَ آمَنُوا ادْخُلُوا فِي السِّلْمِ کَافَّةً وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوَاتِ الشَّیْطَانِ إِنَّهُ لَکُمْ عَدُوٌّ مُبِینٌ* (البقرة/۲۰۸)

ژباړه: اې مومنانو! په اسلام کي بشپړ داخل سئ او د شیطان پر قدمونو مه ځئ ځکه هغه ستاسو یو ښکاره دښمن دی.

زموږ د ټولني ځیني وګړي ورځ په غیبت، بهتان، درواغو، بې انصافۍ، نادودو او نورو شیطاني کړنو تېره کړي، خو چې د لمانځه وخت راسي، لستوڼي را پورته کړي، مسواک ور واخلي، کلک اودس تازه کړي، د مسجد خواته ور روان سي او خپل ځان ورته ډېر غوره او کامل مسلمان بریښي، حال دا چې الله جل جلاله فرمایي:

فَوَیْلٌ لِلْمُصَلِّینَ (۴) الَّذِینَ هُمْ عَنْ صَلَاتِهِمْ سَاهُونَ (۵) الَّذِینَ هُمْ یُرَاؤُونَ (۶) وَیَمْنَعُونَ الْمَاعُونَ* (۷) (الماعون/ ۴-۷)

ژباړه: عذاب دی هغه لمونځ کوونکو ته چې په لمونځونو کي غفلت او ځانښودنه کوي او د عامه خیر له کارونو ډډه کوي.

حضرت عمر فاروق رضی الله عنه ویلي دي: ښه مسلمانان د دوی په لمونځو او حجو نه پېژندل کیږي، بلکي که تاسو غواړئ، د یو چا ښه والی معلوم کړئ، نو د هغه خبرو ته فکر وکړئ، چې آیا هغه درواغ وایي که نه؟

مسلمانان باید یقین ولري چې اسلام موږ یوازي په څو محدودو عبادتونو نه یو مکلف کړي، بلکي د ژوند په هره برخه او هر پړاو کي اسلام خپل احکام لري چې باید عملي سي.

که موږ د اسلام سم درک او فهم ترلاسه کړو، نو پوه به سو چي یو ښه مسلمان باید د ښو لمونځونو او روژو ترڅنګ ډېر عادل، با انصافه، رښتیا ویونکی، مخلص، پرهېزګاره او په عموم کي د ډېرو ښو اخلاقو درلودونکی وي، خوله یې باید د غیبت، بهتان او درواغو ویلو څخه خوندي وي؛ یا په لنډ عبارت مسلمان د خپل ژوند په هره برخه کي د اسلامي احکامو په بشپړ اخلاص مکلف دی، لکه چي الله جل جلاله فرمایي:

وَمَا أُمِرُوا إِلا لِیَعْبُدُوا اللَّهَ مُخْلِصِینَ لَهُ الدِّینَ حُنَفَاءَ وَیُقِیمُوا الصَّلَاةَ وَیُؤْتُوا الزَّکَاةَ وَذَلِکَ دِینُ الْقَیِّمَةِ (البینة/۵)

ژباړه: تاسو د دین په کړنو کي په بشپړ اخلاص مکلف یاست، همدا اخلاص سمه تګلاره ده او هم په اخلاص لمونځونه کوئ، زکاتونه ورکوئ او همدا سالم دین دی.

## د روژې په احترام ژمنه

نعمت الله "شاکر"

راسئ ژمنه وکړو، چې په دې روژه کي به یوه ثانیه هم د الله تعالی په نافرمانۍ او غفلت کي نه تېروو!

۱ – روژه د ایمان او اخلاقو د تزکیې میاشت ده.

۲ – ټول هغه جرمونه چې د روژې څخه مخکي منع او حرام دي، په روژه کي هم منع او حرام دي. یعني د اعمالو د جواز او عدم جواز په اساس، د روژې ورځ او شپه فرق نه لري.

په روژه کي د شپې هغه درې چاري (خوراک، څښاک او د زوجینو ترمنځ اړیکي) د انساني ضرورتونو له امله جائز دي، دا په دې معنی نه ده، چې نور حرام عملونه هم خلک کولای سي (نعوذ بالله!)

راسئ بله ژمنه هم وکړو!

د غیر ضروري او زیات خوراک او څښاک څخه به ځانونه وساتو، ترڅو:

۱ – له یوه اړخه د روژې نتیجه پوره حاصله کړو، ځکه زیات او قوي خوراک مو ذهن غافل کوي، په تفکر او عبادت کي لټي ایجادیږي او شهوت پاروي...

۲ – له بله اړخه به مو له خپل جسم سره احسان کړی وي، ځکه جسم د زیاتو او قوي خوراکونو په هضم، جذب او مصرف کي ستونزي ګالي.

۳ – بل به مو دغو اسلام دښمن او انسان ضد عناصرو ته ګټه نه وي رسېدلې، چې په دغو مبارکو او سپېڅلو شپو او ورځو کي د ضروري او ارتزاقي موادو نرخونه لوړوي.

## د اختر په ورځو کي کوم کاروبارونه کولای سو؟

امین ستانکزی — اوله برخه

په کاروبارونو کي پلور او خرڅلاو یو غټ امتحان وي، کاروباریان د دې له پاره خطر نه قبلوي چې زما محصولات، تولیدات او خدمات به خلک واخلي او یا نه، خو کله – کله دا اندېښنه نه وي، ځکه چې پوهېږي، په مارکېټ کي تقاضا ډېره ده، حتمًا دا تولیدات او محصولات خلک اخلي، نو په دې وخت کي اقدام په کار دی، داسي فرصتونه ډېر وخت برابرېږي او موږ به شاید ورته متوجه سوي او سو، له نورو بېلګو تېرېږو، یوازي د اختر په شپو – ورځو کي د یو څو کاروباري فرصتونو بېلګي په لاندي ډول وړاندي کوو:

۱ – د اختر له پاره د وچو او تازه مېوو خرڅلاو:

د اختر په شپو – ورځو کي خلک د خپل ځان او مېلمنو له پاره مېوې اخلي او په مارکېټ کي په لوړه کچه تقاضا رامنځته کېږي، چې له کلیوالي سیمو را نیولې، تر ښاري سیمو پوري په ټولو ځایونو کي یې د خرڅلاو کچه لوړېږي، د دې له پاره چې خلکو ته اسانتیا وي، نو ډېر وخت د کلیوالي سیمو خلک له ښاره وچه او تازه مېوه وړي او بیا یې هلته په مختلفو پاکټونو کي د وزنونو او قیمتونو په تفکیک پلوري، د دې خرڅلاو له پاره ډېري پانګي ته اړتیا نسته، یوازي د خپلي شته پانګي په مټ هم کولای سئ، دا ډول خدمات وړاندي کړي.

(تازه موسمي مېوې، منې، مالټې، کیلې، بادام، ممیز، پسته، نخود او داسي نور.)

۲ – د ماشومانو د تیارو جوړو سوو جامو او یا رختونو خرڅلاو

معلومه خبره ده، چې خلک د خوښیو په شپو – ورځو کي د خپل ځان او خپلي کورنۍ له پاره نوي جامې اخلي او د خلکو اقتصادي حالت ته په کتو سره، ډېر وخت کوښښ کوي، چې د خپل توان مطابق جامې واخلي، نو که چیري تاسو په دې برخه کي یو څه د مارکېټ پوهه ولری،، نو کولای سی په عمده ډول دا ډول جامې، رختونه او د رختونو ټوټې راوړی او بیا یې د ښار، ولسوالۍ او کلي په بازارونو کي خرڅلاو ته وړاندي کړئ، نو د دې ګټه داده، چې د خلکو د لوړي تقاضا له مخي یې خرڅلاو هم لوړ دی او بیرته ستاسو لګول سوې پانګه هم له ګټې سره یو ځای ډېر ژر لاسته راځي.

۳ – د بوټونو، څپلیو او چپلکو خرڅلاو:

د اختر په شپو – ورځو کي له ښه او نوو جامو سره د څپلیو، بوټونو او چپلکو اړتیا هم لیدل کېږي او په لوړه کچه تقاضا ورته رامنځته کېږي، د دې برخي له پاره په لږ پانګوني سره هم موږ کولای سو، چې تر اختر مخکي ښه او غوره ډیزاینونه چپلکي، بوټونه، څپلۍ راوړو، د خلکو له اړتیا او غوښتني سره ورته په هماغه شکل تولیدات وړاندي کړو.

دا کاروبار پر ښار سربېره، په کلو کي هم ښه بازار لري او هلته هم کولای سو، چې د خلکو د غوښتني مطابق، ورته توکي عرضه کړو.

۴ – د بیکرۍ او خوږو محصولاتو عرضه کول:

په اخترونو کي د خوږو او بیکرۍ تولیداتو ته په لوړه کچه تقاضا رامنځته کېږي، نو د دې له پاره چې په لږ پانګوني سره، ښه او غوره تجربه او ګټه ترلاسه کړو، کولای سو چې په مختلفو بڼو او ذایقو سره د خلکو د غوښتني مطابق، خواږه او بیکري خدمات ورته وړاندي کړو، خلک نه یوازي د خپل ځان دا اړتیا له پاره دا توکي رانیسي، بلکي د خپلو خپلوانو او په ځانګړي ډول، د خورلڼو او نامزادانو له پاره د خوږو محصولات اخلي او د ډالۍ په ډول یې ورته لیږي، په دې کي سلیقه، کیفیت او نظافت باید لومړی وګڼل سي او بیا بازار ته وړاندي سي.

(کیک، کلچې، مټایي، ماچې او داسي نور)

۵ – د ماشومانو د لوبو سامان آلات او تفریحي وسایلو پلورل:

کله چې موږ د کاروبارونو خبري کوو، نو ډېر وخت به هغه کاروبارونه چې زموږ او ستاسو په شاوخوا کي وي، راته ډېر نادیده نه ښکاره کېږي او دا د کوچنیو کاروبارونو یوه ښه ځانګړنه ده، چې خلک یې ښه ګڼي او کله چې یې په اړه ورته یادونه کوي، نو هماغه وخت یې له دا ډول کاروبارونو د ګټې اخیستني یاد ذهن ته راځي، همداسي د ماشومانو د لوبو سامان آلات او تفریحي وسایل موهم حتمًا ذهن ته راځي، چې هر یو د خپل ماشومتوب په دوره کي د خپلو اختر مبارکیو یوه ډېره برخه پیسې پر دې وسایلو ورکړي دي، نو دا یوه اړتیا ده او په مارکېټ کي د خلکو اړتیا پلټل، ښه او غوره نتیجه لري، د کوچنیانو له پاره د لوبو سامان آلات او تفریحي وسایلو خرڅلاو کولای سو، په لږ پانګونه سره هم پیل کړو او ښه والی یې دا دی، چې خپله پانګه ژر او په اسانۍ سره بیرته ترلاسه کولای سو او دا په کاروبار کي یو ښه ټکی دی.

۷ – د نجونو د سینګار توکو، بنګړیو او فېشن شیانو خرڅلاو:

کله – کله په مارکېټ کي اړتیا رامنځته کول، خپله د کاروباریانو په مټ تر سره کېږي، خو ډېری وختونه دا اړتیا د مخکنۍ زمینې برابرېدو څخه سرچینه اخلي، دا خبره په دې معنی، چې د اختر په مناسبت، ډېري غټې او کوچنۍ نجوني د سینګار توکو اخیستلو هوډ لري، زموږ او ستاسو په ټولنه کي کلتوري او فرهنګي مسایل هم په مارکېټ ډېر تأثیر لري، لکه: په اخترونو او نورو مناسبتونو کي خپلو ښځینه وو او یا هم د ښادۍ او خیښۍ له پاره د مراسمو په توګه د سینګار توکو تقاضا لوړېږي، چې د خسرګنۍ کور خپلي نامزادي سوي نجلۍ ته پر جامو، ډالیو او پیسو سربېره، سینګار توکي هم اخلي او دا یو فرهنګ ګرځېدلی دی، نو د خرڅلاو له پاره مخکي لا زمینه برابره سوې ده او په لږ پانګوني سره هم کولای سو، چې د خلکو اړتیا مطابق درک سره مخته ولاړ سو، په ښه او نوي ډیزاینونو کي سینګار توکي عرضه کړو.

۸ – د چاپي، قلمي او عامو نکرځو خرڅلاو:

اختر د خوشحالۍ له پاره یو ښه فرصت دی او معلومه خبره ده، چې خلک خوشحالۍ په کښي کوي او نبوي لارښووني هم همدا دي، چې د مسلمانانو د خوشحالۍ شېبې یې همدا د اخترونو شپې – ورځې ښوولي دي، نو خوشحالۍ چې یو څوک کوي، حتمًا به ورته وسایل او شرایط برابروي، چې دا کار د کاروباریانو مسئولیت دی، یو له ښه کاروبارونو چې د اختر په شپو – ورځو کي ښه پایله لري، د مختلفو چاپي، قلمي او عامو نکرځو خرڅلاو دی، چې له ماشومانو را نیولې، تر غټانو پوري د خپل سینګار له پاره ورته اړتیا لري.

۸ – د مېوو او خوږو له پاره لوښي، مېوه دانۍ او دسترخوانونه:

یو د ډېرو تقاضاوو څخه چې د اختر په شپو – ورځو کي یې خلک لري، هغه د مېوو – خوږو له پاره لوښي، مېوه دانۍ او دسترخوانونه دي، نو په دې برخه کي که یو څوک پانګونه وکړي او ښه ډیزاینونه په غوره کیفیت او کم قیمت سره وړاندي کړي، نو ښه خرڅلاو لري او ښه ګټه هم ترلاسه کولای سي.

نور بیا...

## د بدر غزا؛ د روژې ۱۷ مه!

مطیع الله "ذهین"

د برکتونو او رحمتونو څخه ډکه میاشت (روژه) په تاریخي لحاظ، د اسلام او مسلمانانو له پاره د خورا لویو بریو او بریالیتوبونو میاشت ده.

د دوهم هجري کال د روژې د میاشتي پر ۱۷ مه وه، چې په شمېر، امکاناتو، تجهیزاتو او وسایلو لږ؛ خو په ایماني، عقیدوي او معنوي قوت سمبالو صحابه کرامو رضوان الله علیهم د خپل اعلی قاید محمد الرسول الله صلی الله علیه وسلم تر قیادت او زعامت لاندي، د الله تعالی په نصرت سره، د بدر په میدان کي د جهالت د پلار ابو جهل، عقبه بن ابي معیط، امیه بن خلف، نضر بن حارث او نورو قریشي لویانو په شمول، د اسلام د سترو مخالفینو او دښمنانو پزې پر مځکه ور وموښلې او د دوی له شر او شرارته یې سیمه او منطقه خلاصه کړله.

په دې لویه بریا سره له یوې خوا د ایمان، عقیدې او د الله تعالی د نصرت قوت ښه انځور سو او له بلي خوا و عربو ته د اسلام او مسلمانانو قوت، تعهد او منظموالی هم څرګند سو او د دې ترڅنګ، د اسلام د خپراوي او دعوت له پاره لا لار پرانیستل سوه.

خوښونه: شهید شیخ رحیم الله "حقاني"

# د شیطان لښکر

(۱۱۴) برخه

## د خوارجو نوي څېره (داعش)

او زمونږ په امامانو کې چې چا د خوارجو پر کفر باندي فتوا ورکړې ده، هغوی د دې تشبیه له ظاهره دلیل نیولی او ډېرو علماوو د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د دې وینا:

"فیتماری في الفوق" له امله د خوارجو په کفر کې توقف غوره کړی دی، ځکه چې دا د دوی په اړه د شک تقاضا کوي، ځکه باید توقف وسي، خو د حدیث له مخي لومړی قول یعني کافر کېدل یې ښکاره او ظاهر دي.

حافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله د امام ابوالعباس قرطبي په حواله سره فرمایي:

ژباړه: امام قرطبي په المفهم کې فرمايي: د ابو سعید خدري رضي الله عنه په حدیث کې ذکر سوی تمثیل د خوارجو د کفر تائید کوي، ځکه چې ښکاره مقصود د حدیث دادی: چې دوی له اسلام څخه وتلي دي او له اسلام سره یې هیڅ تعلق پاته نه دی، لکه د غشي د خپل ویشتونکي په زور او خپلي تېزۍ سره دومره تېزه له ښکاره ووځي چې د ښکار وینه و غیره بیخي ورباندي و نه لګېږي.

۷–علامه ابن تیمیه:

علامه ابن تیمیه رحمه الله [مړ: ۷۲۸هـ] هم خوارج کافر ګڼي، دی د خوارجو د راوتلو، د هغوی د عقیدو، ظاهري دینداري، د دین څخه د وتلو او له هغوی سره د جنګ په اړه لیکي:

ژباړه: دلته مقصود دادی چې د خوارجو ظهور په فتنه کې وسو، دوی عثمان، علي رضي الله عنهما او د دوی پر ملګرو باندي د کفر فتوا لګوي، په دوی کې هغه صفتونه کټ–مټ پیدا کېږي چې حضور پاک صلی الله علیه وسلم بیان کړي دي:

"دوی به له مسلمانانو سره جنګېږي او بت پرسته کافران به پرېږدي".

په ښکاره به له ټولو خلکو ښه لمونځونه، روژې او په ښایسته آواز سره به د قرآنکریم تلاوت کوي، لکه نبي کریم صلی الله علیه وسلم د دوی په اړه فرمایلي دي:

"له تاسو به هر یو خپل لمونځ د دوی د لمانځه په مقابل کې، خپله روژه د دوی د روژې په مقابل کې کمه او سپکه وګڼي، دوی به په ډېره روانتیا سره قرآن لولي، خو له ستوني به یې نه تېرېږي، له اسلامه به داسي ووځي؛ لکه غشی چې له ښکار څخه وځي."

دوی د مسلمانانو ځان او مال حلال وګڼل، نو ځکه له ایمانه ووتل، له صحیح احادیثو څخه ثابته ده چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:

"مسلمان هغه دی چې د هغه له ژبې او لاس، د آزاره بل مسلمان خوندي وي."

او دوی خو پر مسلمانانو باندي وسله وال تېری کړی او د مسلمانانو تکفیر یې کړی، له دې امله دوی د اسلام د دین څخه وتلي دي.

۸–امام تقي الدین السبکي:

امام تقي الدين ابو الحسن علي بن عبد الکافي السبکي [ مړ: ۷۳۶ هـ] هم د لویو او نامتو امامانو او محققینو له ډلي دی، دوی د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د زیارت په اړه د حدیثو یوه مجموعه هم لیکلې ده.

"شفاء السقام في زيارة خير الانام صلى الله عليه وسلم" په نامه سره یې ترتیب ورکړی دی، ده په خپلو فتواوو کي خوارجو ته په دې اساس کافر ویلي دي، چې خوارجو د صحابه کرامو رضي الله عنهم تکفیر کړی دی.

حافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله فرمایي:

ژباړه: په متأخرینو کې چې د خوارجو پر کفر قایل دي، یو امام تقي الدين سبکي رحمه الله هم دی.

هغه په خپلو فتاوو کي فرمایي:

"کومو خلکو چي خوارجو او غالي روافضو ته کافر ویلي دي، هغوی د دوی په کفر باندي دلیل دا نیولی دی چې دې خلکو لوی–لوی صحابه کرام رضي الله عنهم کافر ګرځولي دي چي دا یو ډول د نبي کریم صلی الله علیه وسلم تکذیب دی، ځکه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم هغو صحابه کرامو ته د جنت زېری ورکړی دی. [او تکذیب د نبي کفر دی.]

علامه سبکي رحمه الله فرمایي: زما په آند د خوارجو پر کفر بانيې دا دلیل بالکل صحیح دی. دلته دا نقطه واضح کول ضروري دي چې د خارجي کېدلو له پاره د صحابه کرامو رضي الله عنهم تکفیر ضروري نه دی، په خوارجو کې د صحابه کرامو تکفیر یوازي هغې پخوانۍ ډلې کاوه چې پر حضرت علي رضی الله عنه یې پاخون کړی و.

نوربیا...

# د پاکستان وروستۍ پېښي او د حکومت ناکام مدیریت

صابر جان "محصل"

عبدالرحمن ابن خلدون په خپل کتاب د ابن خلدون مقدمه کي نظامونه د انسان له ژوند سره تشبیه کړي، هغه لیکي چي نظامونه هم د انسانانو د ژوند په څېر ۳ پړاوونه لري: ماشومتوب، ځواني او بوډاتوب. مطلب دا چي نظام هم په لومړي سر کي د ماشومانو په څېر نادان او بې تجربې وي، بیا د ځوانانو په څېر قوت پیدا کوي او بیا لکه عمر خوړلی انسان، ضعیف کېږي. د مرګ تر کندي رسېږي او له منځه ځي.

ابن خلدون رحمه الله د نظامونو د پرځېدلو څو عمده علتونه بیان کړي چي ظلم، بې عدالتي او د ولسونو ناخوښي یې مهم علتونه بللای سو.

تر ۱۹۴۷ مېلادي کال مخکي چي کله د پاکستان د جوړېدو ګنګوسې خپرېدې، د هند ډېرو مسلمانانو او علماء کرامو د یاد هیواد د جوړېدو مخالفت کاوه او دا کار یې د هند د مسلمان ولس په زیان ګڼی، چي د پاکستان په جوړولو سره، د هند مسلمان ولس او د هغوی قوت تقسیمېږي.

د پاکستان د جوړېدو فکر او نظریه چي د انګرېزي استعمارګرو له خوا طرحه سوې وه، په سیمه کي د ځینو نورو داسي اشخاصو په ملتیا پلې سوه چي هویت یې هیڅ ځرګند نه و.

د هند د مسلمان ولس او د جیدو علماوو د اختلاف باوجود، د ۱۹۴۷ مېلادي کال د اګست میاشتي پر ۱۴ تاریخ د پاکستان په نامه په سیمه کي یو هیواد رامنځته سو.

داسي هیوادچي د افغانستان په شمول، د سیمي ډېرو هیوادونو تر ډېره وخته په رسمیت نه پېژانده.

د پاکستان تر جوړېدو یو کال وروسته چي کله د پاکستان د حکومت له لوري د بلوچستان ایالت سیمه، د پاکستان برخه وګڼه سوه، د بلوچستان د ولس غبرګونونه یې را وپارول او د پاکستان د نظام په وړاندي یې له خپلي خاوري د دفاع له پاره مسلح جګړه پیل کړه چي پاکستاني پوځي نظام یې په غبرګون کي له تېرو ۷۰ کلونو راهیسي د بلوڅ قوم په وژنو او ربړولو بوخت دی او د سوونو زرو په تعداد یې بلوڅان قتل کړي، بندیان کړي او تري تم کړي دي. د دې ظلمونو په غبرګون کي له تېرو ۵۰ کلونو راهیسي بلوڅ آزادي غوښتونکو هم د پاکستان پر پوځ او د نظام پر ادارو بریدونو ته دوام ورکړی، چي په دې وروستیو کلونو کي یې په بریدونو کي د پام وړ زیاتوالی راغلی دی.

د راپورونو له مخي، په تېر ۲۰۲۴م کال په بلوچستان ایالت کي پر پوځ او ادارو ۳۱۶ بریدونه سوي چي د ۱۷۹۰ په شاوخوا کي یې د پوځ عسکر وژلي، او ډېري پوځي وسایط او تأسیسات یې له منځه وړي دي.

د بلوچستان ایالت د خضدار ولایت مرکز نیول، د هوتل پر نظامي اډه برید، په تربت کي د بحري ځواکونو پر اډه برید، د لویو لارو ترل، د بولان په سیمه کي د ۲۰۰ عسکرو برمته کول او تېره ورځ د بلوچستان په نوشکي سیمه کي د ۹۰ عسکرو وژنه یې مهم بریدونه بلل کېږي.

همدغه راز کله چي په ۲۰۰۶م کال کي پاکستاني پوځ په پلازمېنه اسلام آباد کي د لال مسجد په پېښه کي د شیخ عبدالرشید غازي په شمول ۳۲۷۰ د مدرسي طالبان او ماشومان په شهادت ورسول او په خیبر پښتونخوا کي یې په مختلفو بهانو ډېر پوځي عملیات تر سره کړل چي ملکي او بې ګناه ولس ته په کښې د سر او مال زیانونه واوښتل. په خیبر پښتونخوا کي هم د پاکستاني طالبانو/تحریک طالبان پاکستان د پوځ او ادارو پر خلاف د جهاد اعلان وکړ چي په ډېر کم وخت کي د ولس له پراخ ملاتړه برخمن سول او قوت یې پیدا کړ، چي له تېرو ۱۸ کلونو راهیسي د رژیم پر خلاف، په جګړه بوخت دي او په دې وروستیو کلونو کي یې په بریدونو کي د پام وړ زیاتوالی لیدل کېږي او هره ورځ پوځ ته د درنو تلفاتو او زیانونو د اړولو ادعاوي کوي.

په تېر ۲۰۲۴م کلني راپور کي د پاکستاني طالبانو غورځنګ، پوځ ته تر ۲۰۰۰ د زیاتو تلفاتو د اړولو ادعا کړې او تر څنګ یې د سوونو په تعداد، د وسایطو او تأسیساتو د له منځه وړلو یادونه هم کړې وه، چي تازه یې د الخندق په نامه پسرلني عملیات پیل کړي او له تېري ورځي راهیسي یې په ټول پاکستان کي لسونو بریدونه کړي او پوځ ته یې ځاني او مالي زیانونه اړولي دي.

همدا راز په تېر م کال کي د کشمیر ولس هم له پاکستانه د آزادۍ غوښتلو له شعارونو سره بازارونو ته راووتی، چي له خپلې سیمي یې د پاکستاني پوځیانو د وتلو غوښتني کولې.

د ګلګت بلدستان خلک هم د پاکستاني پوځ له چلند شکایتونه لري او وخت ناوخت یې پر خلاف سوله ییز حرکتونه کوي.

۲۰۲۴ مېلادي کال د پاکستاني پوځ له پاره تر ټولو خونړی کال بلل سوی چي پوځ ته په کښې ډېر تلفات اوښتي، سیمي او مرکزونه یې له لاسه ورکړي او ډېر پوځي تأسیسات او مرکزونه حتی الوتکي یې له منځه تللي دي.

پاکستاني نظام د امنیت په تأمینولو کي پاته راغلی او په سیمه کي په یو ناامنه هیواد بدل سوی دی.

پاکستان تل د خپلو ټولو ناکامیو د پټولو هڅې کوي، د پرې ګوته سیمه ییزو هیوادونو ته نیسي او یا هم د عامه فکر د مصروف ساتلو له پاره هدفي وژني کوي، د سیاسي او علمي اشخاصو ژوند له ګواښ سره مخ سوی او په هدفي وژنو کي پوځ او د پاکستان د استخباراتي ادارو ښکېلتیا هم ولس ته ځرګنده سوې ده.

ولس پر حکومت بې باوره سوی او ورځ تر بلي د ولس له حکومت سره د فاصلې واټن زیاتېږي.

پاکستان د [illegible] سیلانیانو له پاره تر ټولو ناامنه هیواد بلل سوی دی.

پاکستاني پوځ د سیمي د بې ثباتۍ له پاره د خوارجو د ترهګري ډلي حمایت کوي، په خپله خاوره کي یې خوارجو ته مرکزونه ورکړي او د پاکستان له خاوري په سیمه کي ترهګریز بریدونه رهبري کوي.

له خارجي ترهګرو سره د اړیکو او حمایت له کبله یې د سیمي له هیوادونو سره سیاسي اوضاع زیانمنه سوې او په سیاسي لحاظ منزوي سوی دی.

پورتنیو امنیتي او سیاسي اوضاع ته په کتلو داسي بریښي چي پاکستانی نظام د خپلو ظلمونو، فساد، اقتصادي مشکلاتو او ناکام مدیریت له کبله، د عمر خوړلي انسان په څېر، د ژوند په وروستي حال کي دی او له سختو ننګونو سره مخ، د ګړنګ پر غاړه ولاړ دی.

## شعر او آدب

# د طلوع زریني وړانګې

## غزل

احمد شاه "ژوبل"

نن موسم د جنتو دی – غر و دښت ټول د کتو دی

هم روژه هم پسرلی دی – د رحمت برکتو دی

عبادت عجیبه خوند کړي – وخت د فرضو سنتو دی

دا احسان د ذوالجلال دی – راضي زمونږ له همتو دی

طبیعت په حمد لګیا دی – خدای ښتن د صفتو دی

درود سلام پر نبي وایو – چي پیشوا د امتو دی

ای بنده! خدای ته رجوع کړه – دغه ږغ د فرشتو دی

د دوږخ ورونه تړلي – څه ښه وخت د فرصتو دی

د جنت دروازې خلاصي – خوښ زمونږ له زحمتو دی

وخت د خیر او خیرات دی – ضرورت صرف د نیتو دی

په هیواد کي امنیت دی – نفرت ورک له ذهنیتو دی

خدای دي عفوه مونږ ته وکړي – چي خاوند د قدرتو دی

"ژوبل" بیا قلم ته لاس کړ – دا بیان یې په پښتو دی

## نظم

روبین حسن

پسرلی د خوشبویانو مجموعه ده
چي د کال له معطر وجوده اوري
د ښکلا د کرشمو پیل دلته کېږي
نباتات له درانه خوبه راویښېږي
سپېرې مځکې لکه ناوې سینګارېږي
دهقان خوښ وي له څېري یې معلومېږي
له مرغانو د خوښۍ نغمې لورېږي
داوبو له شوره څه آواز ږغېږي
څه سندري مې تر غوږه رارسېږي
څه آرامه موسیقي په کښې نڅېږي
پسرلی د خوشبویانو مجموعه ده

دهوا لمنه ډکه له خوشبو وي
د لاله د سیني داغ پر غتېدو وي
د نرګس لاس د شبیو پر اوږو وي
د آسمان له ستر ګو اوښکي رابهېږي
د ګلاب په اننګو کي ایسارېږي
څه رنګونه وي څه کیف ترې راڅخېږي
په لیدو یې د جنت مینه ماتېږي
د غوټۍ له غوړېدو نه احساسېږي
چي خوابدو انسانانو ته خندېږي
پسرلی د خوشبویانو مجموعه ده

د نفرت بد بویي نه په کښې ځائېږي
د حسد فصلونه نه په کښې رسېږي
په سینه کي له حسده اور بلېږي
انتقام دی نفرتونه تري نه زېږي
کینه ګر انسان په ځان کي خوړل کېږي
لاس یې تش زړه یې له درده پټاوېږي
بس د بل په خوارېدو به خوشحالېږي
همېشه به د حسرت ډول ته ګډېږي
د ژوندون له خوشحالو به محرومېږي
پسرلی د خوشبویانو مجموعه ده

د نسیم موسیقي ستا آواز ته ورته
چي ږغېږي وني ټولي ور ته ناځي
طبیعت دومره په ځیر ځیر ورته ګوري
لکه زه چي تا د حورو منځ کي وینم
ته روانه ئې دوی ټولي در پسې وي
ستا په لاس کي د ګلانو ګلدستې وي
خوشبویاني یې تر ما پوري رسېږي
ما ته راسي راته داسي ګلاب راکړي
د "روبین" نوم یې پر پاڼه نوشته وي

Tolo E Afghan Journal

طلوع افغان مدیریت له ټاکلي لیکنیز معیار سره سم، دلیکنو په اصلاح کي د لاسوهني حق لري.

ګرانو لوستونکو! په ډېر احترام هیله کېږي، چي دا سپېڅلي پاڼي بې ځایه و نه غورځوئ!

## د ګډون کوونکو له پاره خبرتیا!

د طلوع افغان تاریخي خپرونه چي د هیواد په مطبوعاتي تاریخ کي ځانګړی ځای لري. که غواړئ چي د لمریزکال په آخرکي د طلوع افغان تاریخي ورځپاڼي یو بشپړ کلکسیون ولرئ، نو په طلوع افغان ورځپاڼه کي ګډون وکړئ.

د ګډون کلنی بیه ۵۰۰- پنځه سوه افغانی، زده کوونکو او محصلینو ته د تصدیق په وړاندي کولو سره نیمه بیه ټاکل سوې ده. اداره

مســــــئول مـــدیر: ـــــــــ بریـالـــی "فیـضي"
د تصـحیح مسئـــول: ـــــــ حاجي عبدالله "ذاکري"
کمـــپوز او ډیــــزاین: ـــــــ نصیر احمـد "صــابر"
د مــــدیریت شمېره: ـــــــ ۰۷۰۵۶۰۸۶۷۳
د توزیع مدیریت شمېره: ـــــــ ۰۷۰۰۴۹۱۴۳۶
پتــه: ـــــــــــــــ علامه حبیبي واټ ـ اطلاعات او فرهنګ ریاست
د برېښنالیک پته: ـــــــــ Afghan.tolo@yahoo.com

Founded in 1921 | ISSue: 77 | Established in 1300 Hijri


# اعلانونه او خبرتیاوي

**(۱) مخ پاته: دلوړو زده کړو وزیر: هر ...**

د هیواد یو مهم اکاډمیک مرکز دی چي د افغانستان د بېلابېلو ولایتونو محصلان زده کړې په کښې کوي، زموږ استادان د علمي ودې او پرمختګ له پاره نه ستړې کېدونکي هڅې کوي او محصلان باید له دې زرین فرصته ګټه واخلي.

دلوړو زده کړو سرپرست وزیر د روژې مبارکي میاشتي پر فضیلتونو، د علم پر ارزښت، د انساني کرامت پر مفهوم او د اسلامي نظام پر ښېګڼو هر اړخیزه وینا وکړه او ویې ویل: هر مسلمان باید هڅه وکړي چي د خپل مسلک اړوند، عصري زده کړې ترلاسه کړي، خو د دیني زده کړو ارزښت باید هیڅکله له پامه و نه باسي.

د هغه په قول، الله تعالی انسان ته د ټولو مخلوقاتو په پرتله، غوره مقام ورکړی دی، نو انسان باید خپل مسئولیتونه وپېژني، د الله تعالی د حکمونو پیروي وکړي او د ټولني د اصلاح له پاره هڅه وکړي او همدارنګه یې د شیخ صاحب حفظه الله وینا ته اشاره وکړه چي وایي: "زه د دې نظام حاکم نه یم، بلکي زه د دې اسلامي نظام یو خادم یم او د دې نظام یوازنی حاکم الله تعالی جل جلاله دی."

د غونډې په وروستیو کي د کندهار د علماوو شورا مرستیال محصلانو ته په خطاب کي وویل، پر تاسو د نظام ډېره سرمایه مصرفېږي او تاسو باید په پوره توان سره خپل ځانونه د کمال تر کچې ورسوئ، ځکه اوس د پوهنتونونو او دیني مدرسو ترمنځ توپیر نسته.

**(۱) مخ پاته: په کندهار کي د...**

د مقام استازی مولوي نذیر احمد، د کندهار والي مرستیال الحاج ملا محمد صادق انقلابي، د کندهار امنیې قوماندان مولوي عبدالاحد طالب، د ۲۰۵ البدر قول اردو قوماندان ملا احمدشاه دین دوست، د کندهار د استخباراتو رئیس ملا محمد نبي کرامت، د کندهار زون د نظامي محکمې رئیس مولوي ګل محمد صیاد، د کندهار د علماوو شورا مرستیال شیخ مولوي اختر محمد زعفراني او د کندهار د فرمانونو او حکمونو د تعقیب او نظارت رئیس مولوي عبدالقادر طه ګډون کړی وو.

په غونډه کي د اجنډا مطابق د تصفیوي چارو د لا ښه تنظیم، د امنیتي چارو د لا یې توکو د ښه سمون او پرمختګ، د نشه قاچاق مخنیوي، د جرمونو په وړاندي د مبارزې او سرحداتو د ښې ساتني په اړه هر اړخیز بحث او خبري وسوې او د موضوعاتو اړوند اړیني پرېکړې وسوې.

**(۱) مخ پاته: د میانکوه بند سمسورولو...**

هم برابر کړي.

د بل خبر له مخي د کندهار د کرهني، اوبو لګولو او مالدارۍ ریاست د خوراک او کرهني نړیوال سازمان FIO په مالي ملاتړ، د پنجوایي ولسوالۍ لسونو بزګرانو ته د املوکو بڼونه جوړ کړي دي.

د یاد ریاست ویاند محمد حنیف حقمل ویلي، د یادې ولسوالۍ ۵۰ تنو بزګرانو ته پر ۵۰ جریبه ځمکه د املوک مېوې بڼونه جوړ سوي چي د شنبې په ورځ هر بزګر ته د املوک مېوې نیالګي ووېشل سول او هر بزګر ته پر یو جریب ځمکه باندي د ۱۳۴ نیالګیو څخه یو د املوک مېوې بڼ جوړ سوی دی.

**(۱) مخ پاته: د سپین بولدک له لاري...**

آژانس ته ویلي، د شنبې په ورځ درې کورنۍ چي د کسانو شمېر یې ۱۳ تنه کېدی، خپل هیواد ته راستانه سول.

همدا راز د جمعې په ورځ درې کورنۍ چي د کسانو شمېر یې ۱۷ تنه کېدی، خپل هیواد ته راستانه سول او همدارنګه د پنجشنبې په ورځ دوې کورنۍ چي د کسانو شمېر یې ۱۲ تنه کېدی، خپل هیواد ته راستانه سول او له یادو کورنیو سره د اسلامي امارت اړوندو ادارو له خوا نغدي مرسته سوې او هم مرستندویه مؤسسو ته د مرستې په هدف ورپېژندل سوي دي.

**(۱) مخ پاته: په ښار او ولسوالیو کي له...**

سره د زده کوونکو له پاره ۵۶۰ جوړې چوکۍ او مېزونه او همدارنګه د ادارو له پاره ۲۹ قلمه قرطاسیه مرسته وسوه.

د یادو ښوونځیو څخه ۱۰ ښوونځي په ښار، دوه ښوونځي په دامان او یو ښوونځی په ډنډ ولسوالۍ کي موقعیت لري.

**(۱) مخ پاته: د زرونو جریبه ځمکي...**

خبري آژانس ته ویلي، په بررسي سوو دوسیو کي ۷۵ زره ۸۴۴ جریبه امارتي ځمکي د غصب مخنیوی سوی دی.

تېره میاشت هم د ۸۶ زره جریبه ځمکو دوسیې بررسي سوي وې، چي په کښې تر ۱۲ زره جریبه زیاته ځمکه تشخیص او د غصب مخنیوی یې سوی دی.

**(۱) مخ پاته: په تېر کال کي سوونو ...**

د ۶۵ عرادې موټر سایکلونو د غلا په تړاو ۱۰۴ تنه، د بېلابېلو اجناسو او اموالو د غلا په تړاو ۳۶۵ تنه نیول سوي دي.

همدا راز د پنځو اختطافي پېښو په تړاو ۱۳ کسان نیول سوي او پنځه تنه د اختطاف کوونکو له منګولو آزاد سوي او ۱۱۰ تنه د قتل، غلا او د یو شمېر جنایي جرمونو په تور نیول سوي دي.

د اقتصادي جرمونو آمریت له لوري ۶۲ قضیې د فرېبکارۍ، د ملکي خلکو او دولتي ځمکو د غصب اړوند ثبت سوي او په تړاو یې ۹۴ تنه نیول سوي دي.

د ډاباګ مدیریت له لوري په روان کال کي د وسلو ګرځولو ۱۲۸۲ قطعې کارتونه مجاهدینو، ۸۴ قطعې کارتونه ملي سوداګرو ته د قانوني وسلو ګرځولو له پاره او ۶ قطعې کارتونه د ښکاري وسلو ګرځولو له پاره جوړ سوي دي.

## ټولنیزې رسنۍ

**Mohammad Zadran:**

که یو کلن پلان لری، وریجې وکری.
که دوه کلن پلان لری، نیالګي کښېنوی.
که سل کلن پلان لری، انسان وروزی.
(کنفسیوس)

**عبید الله "حسام":**

موږ الحمدلله د قرآن د حفظ او تلاوت کولو پراخ کلتور لرو، اما متأسفانه په قرآنکریم کي د ځان پوهولو خلک ډېر لږ دي.

همدا لامل دی چي قرآنکریم زموږ په چلند، تجارت او د ژوند په نورو برخو کي نسته او یا نه عملي کېږي.

موږ د دې عظیم نعمت څخه په لوی لاس ځان بې برخي کړی.

**Niamatullah Shakir:**

په ټولنیزو اړیکو کي د خپګان لوی لامل دادی، چي یو څوک تر خپل وزن کم وتلل سي.

**حامد "افغان":**

صبر درې ډوله دی:
– د الله تعالی پر اطاعت صبر.
– د الله جل جلاله له حرامو صبر.
– د الله پاک پر هغه تقدیرونو صبر کول چي دردونه او ستونزې لري.

دا درې ډوله صبر په روژه کي جمع سوی، ځکه په روژه کي د الله جل جلاله پر اطاعت صبر دی، له حرامو صبر دی، د لوږې او تندې پر سختۍ صبر دی.
(لطائف المعارف لابن رجب ۲۶۹)

**Abrar Agha:**

روژه موږ ته د صدقې، سخاوت او د محتاجو د لاسنیوي درس هم راکوي. دا میاشت زموږ د زړه سختوالی ختموي او موږ د رحم او مهربانۍ پر لور بیایي. د دې میاشتي د برکتونو یوه ښکاره نښه ده، چي د پاک زړه، نوو ارادو او د الله تعالی د رحمت هیله په کښې نغښتې وي.

الله تعالی دې موږ ته توفیق راکړي چي له ګناهونو ځان وساتو او د دې مبارکي میاشتي روحاني فیض ترلاسه کړو. آمین!

**Shafiullah Taand:**

"تراژیدي داده چي ترخورانه نعمتونه نه وي اخیستل سوي، موږ ته یې قدر نه کېږي."

**عبیدالله "ریحان":**

څومره چي ستاسو اخلاص زیات وي، په هماغه کچه به ستر رب جل جلاله تاسو ته نور برکت درکړي.

**Siddiqullah Khushal:**

سخاوت دا نه دی چي تر هغه څه تېر سې، چي ستا نه دي په کار، بلکي سخاوت دادی چي تر هغه څه تېر سې، چي تاسو په خپله ورته اړتیا لری، خو بل اړمن ته یې ورکړی.